# د حضرت محمد ﷺ د ژوند اړوند ۲۵۰ پوښتنې او ځوابونه

**د اهل سنتو له نظره**

**مؤلف: محمد جمالزهي**

**ژباړن: نصیر احمد مصلح**

**کال: ۱۳۹٦ ل**



# د حضرت محمد ﷺ د ژوند اړوند
# ۲۵۰ پوښتنې او ځوابونه

---

**مؤلف:** محمد جمالزهي

**ژباړن:** نصير احمد مصلح

**کمپوز:** نصير احمد مصلح

**د پښتی ډيزاين:** حسيب الرحمن ساحل

**چاپ شمېر:** ۱۰۰۰ ټوکه

**چاپ کال:** ۱۳۹٦ل / ۲۰۱۷ز

**چاپ وار:** دويم



**پاملرنه:** دا کتاب په وړيا توګه ويشل کيږي!

# سریزه

د ژباړې په برخه کې دا زما لومړۍ هڅه ده، کتاب به کوچنی وي خو د لومړۍ ژباړې لپاره مناسب دی. کله چې په ښوونځي کې وم، نو تره مې (شبیر احمد) راته دا کتاب راکړی و او راته یې ویلې وو چې د نبوي ﷺ سیرت د زده کړې لپاره دا کتاب یو اساس او بنسټ شمېرل کېږي.

دا کتاب د ښوونځیو زده کوونکو او د هغوی لپاره چې لا یې تر اوسه نبوي ﷺ سیرت نه دی لوستی ډېر گټور اثر دی، ځکه چې ددې کتاب په لوستلو سره به لوستونکي د نبوي ﷺ سیرت د لویو کتابونو لکه (الرحیق المختوم) له لوستلو سره کومه ستونزه ونه لري.

د مفاهیمو او مطالبو د زده کړې لپاره یوه غوره طریقه دا ده چې پوښتنه مطرح شي او بیا پوښتنې ته ځواب وویل شي. په دې کتاب کې هم له همدې طریقې څخه کار اخیستل شوی دی. د نبوي ﷺ سیرت په هکله پوښتنې مطرح شوي دي او بیا ورته ځواب ورکړ شوی دی.

هیله ده چې د کوم هدف لپاره چې ما دا کتاب ژباړلی دی، هغه هدف ترلاسه کړم.

هېره دې نه وي چې د کتاب د چاپ لگښت یو مؤمن ورور په غاړه اخیستی. زه دوی ته د لوی خدای ﷻ څخه د اجر او ثواب غوښتنه کوم، خدای ﷻ د یې دا لوی خدمت قبول کړي. امین

او همدار راز لـــه ښاغلي صفي الله ناصري څخه هم نړۍ مننه چې د تل په شـان يې راسره د پښـتو متن په اوډنـــه (اېډېټ) کې مرسـته کړي او له ګران دوسـت حنيف الله علم څخه هم بايده چې مننه وکړم، چې د تل په شان يې راسره د کتابونو په تخنيکي برخه کې نـــه سـتړې کېدونکي مرسـتې کړې، د دواړو دې کور ودان وي.

**په درنښت**

**نصير احمد مصلح**

**د ننګرهار پوهنتون**

**musleeh.naseer@gmail.com**

**Facebook: Ah Naseer Musleeh**

۱ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ نسب د پلار له طرفه بیان کړئ؟

۱ -ځواب: محمد بن عبدالله بن عبدالمطلب بن هاشم بن عبد المناف بن قصی بن کلاب بن مره بن کعب بن لوی بن غالب بن فهیر بن مالک بن نضر بن کنانه بن خزیمه بن مدرکه بن الیاس بن مضر بن نزار بن معد بن عدنان.

۲ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ نسب د مور له طرفه بیان کړئ؟

۲ -ځواب: محمد بن آمنه بنت وهب بن عبد مناف بن زهره بن کلاب بن مره.

۳ -پوښتنه: رسول الله ﷺ په کوم کال کې دې نړۍ ته سترګې پرانیستې؟

۳ -ځواب: دوشنبه ۱۲ ربیع الاول یا ۹ ربیع الاول چې د ۵۷۱ ز کال د اپریل ۲۲ سره سمون خوري.

۴ -پوښتنه: رسول الله ﷺ په کوم ښار کې وزیږید؟

۴ -ځواب: د شعب بني هاشم د سوق اللیل په محله کې وزیږید-مکه مکرمه.

۵ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ په ولادت سره په نړۍ کې کومې پېښې رامنځته شوې؟

۵ -ځواب: د ایوان کسری کنګره ماته شوه، د فارس اور غلی شو، د «ساوه» سیند وچ شو او د آسمان په لوري روښنایي اوچته شوه.

۶ -پوښتنه: په رسول الله ﷺ باندې چا «محمد» نوم کېښود؟

۶ -ځواب: د هغه نیکه «عبدالمطلب»

۷ -پوښتنه: ولې قریشو ته د «محمد ﷺ » نوم د تعجب وړ و؟

۷ -ځواب: ځکه چې قریشو ته «محمد» یو نوی نوم و او د هغوی تر منځ بل کس په دې نامه نه و نومول شوی.

۸ -پوښتنه: رسول الله ﷺ ته به چا د «احمد» نوم اخیستلو؟

۸ -ځواب: د هغه مور «بي بي آمنې»

۹ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ د ولادت څخه وروسته عبدالمطلب څه وکړل؟

۹ -ځواب: هغه یې کعبې شریفې ته بوته، د خدای شکر یې ادا کړ او په هغه یې «محمد» نوم کېښود.

۱۰ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ نیکه «عبدالمطلب» ولې په هغه باندې «محمد» نوم کېښود؟

۱۰ -ځواب: ځکه هغه غوښتل، ترڅو د ځمکې او اسمانونو اوسېدونکي د هغه ستاینه وکړي.

۱۱ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ لومړنۍ دایه (د شیدو ورکولو مور) څوک وه؟

۱۱ -ځواب: «ثوبیه» د ابولهب وینځه (کنیزه).

۱۲ -پوښتنه: وروروسته له ثوبیه څخه څوک د رسول الله ﷺ دایه (د شیدو ورکولو مور) شوه؟

۱۲ -ځواب: «حلیمه» د ابو ذویب سعدیه لور.

۱۳ -پوښتنه: حضرت حلیمه سعیده څو کاله د رسول الله ﷺ حضانت (شیدې ورکول) په غاړه درلودل؟

۱۳ -ځواب: څلور کاله.

۱۴ -پوښـتنه: وروسـته له هغې چې حليمه سـعيده، رسول الله ﷺ ته شيدې ورکړې نو د هغه په ژوند کې کوم برکتونه راغلل؟

۱۴ -ځواب: د هغې کمې شـوې شـيدې ډېرې شوې، له نورو ښځو څخه يې کاروان مخکې شو او مېږو يې ډېرې شيدې ورکولې.

۱۵ -پوښتنه: رسول الله ﷺ څو کلن و چې پلار يې وفات شو؟

۱۵ -ځواب: هغه وخت چې د مور په ګېډه کې د دوو مياشتو په عمر و، پلار يې وفات شو.

۱٦ -پوښتنه: رسول الله ﷺ په څو کلنۍ کې خپله مور له لاسه ورکړه؟

۱٦ -ځواب: په ٦ کلنۍ کې.

۱۷ -پوښـتنه: رسـول الله ﷺ څو کلن و چې نيکه يې (عبدالمطلب) وفات شو؟

۱۷ -ځواب: په ۸ کلنۍ کې يې نيکه وفات شو.

۱۸ -پوښتنه: وروسته له عبدالمطلب څخه، چا د رسول الله ﷺ پالنه پر غاړه واخيسته؟

۱۸ -ځواب: د هغه تره (ابو طالب).

۱۹ -پوښتنه: بي بي آمنه، د رسول الله ﷺ مور څرنګه وفات شوه؟

۱۹-ځواب: هغـه وخت چې نيت يې درلود څو خپل د خاوند قبر ته، مدينې ته لاړه شي. نو کله چې د مدينې څخه را ستنه شوه، په لاره کې سخته ناروغه شوه او په «ابوا» نومې سيمه کې وفات شوه.

۲۰ -پوښتنه: لومړی د شق الصدر (د سينې شلېدل) پېښه د رسول الله ﷺ په څو کلنۍ کې واقع شوه؟

۲۰ -ځواب: په ۱۲ کلنۍ کې.

۲۱ -پوښتنه: رسول الله ﷺ په څو کلنۍ کې د خپل تره سره د سوداګرۍ لپاره شام ته ولاړ؟

۲۱ -ځواب: په ۱۲ کلنۍ کې.

۲۲ -پوښتنه: په دغه سفر کې کومې پېښې رامنځته شوې؟

۲۲ -ځواب: په دغه سفر کې يې له نامتو راهب چې «بحيرا» نومېده ليدنه وکړه او کله چې بحيرا دغه ماشوم وليد نو د پيغمبرۍ نښې يې پکې وليدلې او تره ته يې وويل چې د دې راتلونکي ډېر روښانه ده او دا به هماغه موعود (وعده کړ شوی) پيغمبر وي.

۲۳ -پوښتنه: کله چې قريشو پرېکړه وکړه چې کعبه شريفه ودانه کړي نو په هغه وخت کې د رسول الله ﷺ عمر څو کاله و؟

۲۳ -ځواب: ۳۵ کاله.

۲۴ -پوښتنه: د کعبې د ودانولو په وخت کې کومه پېښه رامنځته شوه؟

۲۴ -ځواب: د قريشو قبيلو د حجر الاسود د نصبولو پرسر شخړه وکړه او نږدې وه چې د يو بل وينې توېې کړي.

۲۵ -پوښتنه: رسول الله ﷺ څنګه د دغې پېښې د رامنځته کېدو څخه مخنيوی وکړ؟

٢٥ -ځواب: رسول الله ﷺ حجر الاسود د يوه څادر په منځ کې کېښوده او ټولو تـه يې امر وکړ چې د څادر غاړې ونيسي ــاو کله چې د لګولو ځای ته نږدې شول نو رسول الله ﷺ په خپلو لاسونو حجر الاسود ولګوله.

٢٦ -پوښتنه: رسول الله ﷺ په ځوانۍ کې په کوم صفت باندې مشهور و؟

٢٦ -ځواب: محمد امين.

٢٧ -پوښـــتنه: رســـول الله ﷺ د بعثت څخه مخکې په کوم شريعت باندې خدای تعالی ته عبادت کولو؟

٢٧ -ځواب: هغه موحد[١] و او د ابراهيم (عليه الســـلام) له شريعت څخه يې پيروي کوله.

٢٨ -پوښتنه: د بعثت څخه مخکې، رسول الله ﷺ د عبادت کولو لپاره کوم ځای ته تللو؟

٢٨ -ځواب: د «حرا» غار(سوري) ته.

٢٩ -پوښتنه: رسول الله ﷺ څرنګه په پيغمبرۍ مبعوث شو؟

٢٩ -ځواب: د تېرو عاداتو په اساس د عبادت لپاره به د حرا غار ته تللو، هلته يوه ورځ جبرائيل (عليه السلام) راغی، ورباندې يې سلام واچاوه، وروسته له سلام څخه يې رسول الله ﷺ ته وويل (ووايه)، رسول الله ﷺ ورته وويل (زه نـه شـــم کولی چې ووايم)، څو ځـله يې دا عمل تکرار کړ او هر ځل به جبرائيل (عليه السلام) هغه په غېږ کې ټينګولو.

---

[١] موحد: (يکتا پرست، هغه څوک چې خدای ﷻ يو وګڼې او په هغه ايمان ولري) - ژباړن

۳۰ -پوښتنه: رسول الله ﷺ د ځوانی په لومړی مرحله کې د چا سره تجارت کولو؟

۳۰ -ځواب: له بي بي خديجې (رض) سره.

۳۱ -پوښتنه: د لومړني سوداګريز (تجارتي) سفر څخه، څه موده وروسته رسول الله ﷺ د بي بي خديجې (رض) سره واده وکړ؟

۳۱ -ځواب: دوې مياشتې او ۲۵ ورځې وروسته.

۳۲ -پوښتنه: له رسول الله ﷺ څخه مخکې، کوم پيغمبر تېر شوی وه چې د رسالت دنده هم ورسپارل شوې وه؟

۳۲ -ځواب: حضرت عيسی (عليه السلام).

۳۳ -پوښتنه: رسول الله ﷺ د بعثت پر وخت څو کلن و؟

۳۳ -ځواب: ۴۰ کلن و.

۳۴ -پوښتنه: د بعثت له پېښې څخه وروسته رسول الله ﷺ څه وکړل؟

۳۴ -ځواب: رسول الله ﷺ د حرا غار (سوري) څخه کور ته راغی او بي بي خديجې (رض) ته يې وفرمايل (ما پټ کړئ، ما پټ کړئ) او رامنځته شوې پېښه يې بي بي خديجې (رض) ته بيان کړه.

۳۵ -پوښتنه: بي بي خديجې (رض) بيا څه وکړل؟

۳۵ -ځواب: رسول الله ﷺ يې د «ورقه بن نوفل» خواته بوته او هغه ته يې کيسه بيان کړه.

۳۶ -پوښتنه: ورقه بن نوفل، رسول الله ﷺ ته څه وويل؟

٣٦ -ځواب: ورقه بن نوفل ورته وويل: پر تا باندې جبرائيل نازل شــوی او دا هماغه ملايکه ده چې پر موســی (عليه الســلام) نــــازل شــوې وه او ته په پيغمبرۍ باندې مبعوث شوی يې.

٣٧ -پوښتنه: کومو کسانو په لومړي ځل په رسول الله ﷺ ايمان راوړ؟

٣٧ -ځواب: ابوبکر صــــديق (رض)، علي (رض)، زيـد بن حـارث، بي بي خديجه (رض)، بلال....

٣٨ -پوښتنه: څو کاله د رسول الله ﷺ دعوت پټ و؟

٣٨ -ځواب: درې کاله (په خصوصي بڼه يې خلکو ته دعوت ورکولو).

٣٩ -پوښتنه: د چا په کور کې به رسول الله ﷺ او د هغه ياران را غونډېدل؟

٣٩ -ځواب: د «ارقم» په کور کې.

٤٠ -پوښـتنه: د اسلام د اخفا (پټه) دوره کې، رسول الله ﷺ او د هغه يارانو چېرته عبادت کاوه؟

٤٠ -ځواب: هغوی به د مکې په درو کې د مشرکينو څخه پټ او لرې عبادت کاوه.

٤١ -پوښتنه: رسول الله ﷺ څه وخت خپل دعوت ښکاره پيل کړ؟

٤١ -ځواب: وروســته له هغه وخت څخه چې د مســلمانانو تعداد ٣٠ نفرو ته ورسـېد، نو رسـول الله ﷺ ته امر وشو ترڅو خپل دعوت ښکاره پيل کړي. (فاصدع بما تومر و اعرض عن المشرکين)

٤٢ -پوښتنه: رسول الله ﷺ څنگه خپل دعوت پيل کړ؟

۴۲ -ځواب: د قریشـو ټولې قبیلې یې راغونډې کړې او د صفا په غر کې یې هغوی د اسلام دین او وحدانیت ته دعوت کړل.

۴۳ -پوښتنه: ابو لهب څه عکس العمل وښود؟

۴۳ -ځواب: چیغې یې وهلې او ویل یې چې (هلاک شې محمده)، مونږ دې همدې خبرو لپاره راغونډ کړي یوو؟

۴۴ -پوښتنه: وروسته د اسلام له راښکاره کېدلو څخه مشرکینو څه وکړل؟

۴۴ -ځواب: هغوی رسول الله ﷺ او یارانو ته یې ځور او کړاو ورکړ.

۴۵ -پوښـتنه: د هغو کړاونو څخه چې مشرکینو به د رسول الله ﷺ یارانو ته ورکول، یوه واقعه بیان کړئ؟

۴۵ -ځواب: د «امیـه بن خلف» پـه نامه یو کس و، چې بلال حبشي ـــ د هغه غلام و. بلال به یې هر وخت گرمې هوا ته راوړلو او په سینه به یې ورته گرمه تیږه ایښـــوده او ورته به یې وویل چې: «یا د خدای ﷻ د عبادت څخه لاس واخله او یا به همداسې کړاو درکول کیږي.»

۴٦ -پوښتنه: مشرکینو د رسول الله ﷺ تره ته څه وړاندیز وکړ؟

۴٦ -ځواب: مشرکـــــین د رسول الله ﷺ تره ته ورغلل او ورته یې وویل: «وراره دې زموږ خدایانو پسې نـــاجایزې وایي او موږ ته بې عقله او جاهلان وایي، که غواړي موږ ورته ښکلې نجونې ورکوو او که مال او شتمني غواړي هم یې ورته ورکولی شو.»

۴۷ -پوښتنه: رسول الله ﷺ د هغوی په ځواب کې څه وویل؟

۴۷ -ځواب: «رسـول الله ﷺ وویل: په خدای مې دې قسم وي که لمر مې په ښـــي لاس او ســپوږمۍ راته په کيڼ (چپ) لاس راکړي، بيا به هم د خپل دعوت څخه لاسبری نشم.»

۴۸ -پوښتنه: رسول الله ﷺ به د کومو فرصتونو څخه په ګټه اخيستنه د دين دعوت کولو؟

۴۸ -ځواب: کله چې به حجــاج د محرم په مياشت کې مکې ته راتلل، بيا به يې هغوی ته د اسلام دعوت ورکولو.

۴۹ -پوښتنه: هغه وخت چې د مشرکـــــينو ځور او کړاو خپل اوج ته ورسېد، رسول الله ﷺ څه وکړل؟

۴۹ -ځواب: «رســـول الله ﷺ خپل دوســـتانو ته وفرمايل: له مکې څخه به حبشې ته هجرت وکړو، ځکه چې هلته يو عادل پادشاه حکومت کوي.»

۵۰ -پوښتنه: حبشې ته څو کسانو هجرت وکړ؟

۵۰ -ځواب: ۱۲ سړي او ۴ ښځې وې.

۵۱ -پوښتنه: قريشو کوم کسان د مهاجرينو د تعقيب لپاره حبشې ته واستول؟

۵۱ -ځواب: عبدالله د أبي ربيعه زوی او عمرو د العاص زوی.

۵۲ -پوښتنه: جعفر بن ابي طالب نجاشي ته څه وويل؟

۵۲ -ځواب: موږ يو جاهل او نادانه قوم وو، بت ته به مو سجده کوله، مرداره غوښـــه بـه مو خوړله، ناوړه کارونه به مو کول، صـــله رحم مو نه درلوده، نو

خدای ﷻ د موږ څخه زموږ لپاره رسـول واستولو چې امانت داری او صله رحمی لپاره یې امر وکړ.

۵۳ -پوښتنه: نجاشي له هغوی څخه څه وپوښتل؟

۵۳ -ځواب: د حضرت مریم او عیسی (علیه السلام) په هکله یې پوښتنه وکړه.

۵۴ -پوښتنه: جعفر بن ابي طالب څه وفرمایل؟

۵۴ -ځواب: د سوره مریم څخه یې یوه برخه تلاوت کړه.

۵۵ -پوښتنه: په اخر کې د حبشې پادشاه څه پریکړه وکړه؟

۵۵ -ځواب: هغه وژړل د مهاجرینو د ساتنې په اړه یې وویل: «په خدای ﷻ قسم چې د سرو زور د غره په بدله کې به هم دوی چاته ونه سپارم.»

۵٦ -پوښتنه: کلــه چې مشرکــین د ټولــو لارو څخه ناهیلې شول، نو څه یې وکړل؟

۵٦ -ځواب: سره متحد شول او تړون یې ولیکلو چې هر ډول اړیکې د

محمد ﷺ او بني هاشم سره منع دي. پیر او پلور او د هغوی سره واده کول، دا ټول منع شول.

۵۷ -پوښتنه: د مشرکـــانو په وړاندې ۷ هفتو څخه به کـــم وخت کې څومره لوی حوادث رامخې ته شول؟

۵۷ -ځواب: څلور لوی حوادث.

۵۸ -پوښتنه: دغه محاصرې (کلا بندې) څو کاله دوام وکړ؟

۵۸ -ځواب: درې کاله.

۵۹ -پوښتنه: مسلمانانو کوم تکليفونه په دغه کلونو کې وګالل؟

۵۹ -ځواب: په هغوی باندې ډېره ولږه راغلې وه، د هغوی ماشـومان د ولږې لـه امله چيغې وهلې حتی تر دې پورې چې هغوی بـه د ونې لـه پـاڼو څخه خوراک کولو.

۶۰ -پوښـتنه: د رسـول الله ﷺ او د هغه د يارانو اقتصـادي محاصره (کلا بندي) څنګه پای ته ورسېده؟

۶۰ -ځواب: رسـول الله ﷺ ابو طالب ته خبر ورکړ، چې د قريشـو تړون له منځه تللی او له «باسـمک اللهم» څخه پرته بل کوم څه د تړون په متن کې نه دي پاتې. ابو طالب دغه خبر قريشـو ته واسـتولو، قريشو چې کله له دغې کيسې څخه خبر شول نو وشرمېدل او دغه ظالمانه تړون پای ته ورسېد.

۶۱ -پوښتنه: په کوم کال کې، ابوطالب او بي بي خديجه (رض) وفات شول؟

۶۱ -ځواب: د بعثت په لسم کال.

۶۲ -پوښتنه: دغه پېښې په رسول الله ﷺ څه اغېز وکړ؟

۶۲ -ځواب: رسـول الله ﷺ تر ټولو لوی ملاتړي له لاسـه ورکړل. ځکه بي بي خديجه(رض) د رسول الله ﷺ لپاره د درد تسکين وه او رسول الله ﷺ دغه کال د عام الحزن(د خپګان کال) په نوم ونومولو.

۶۳ -پوښتنه: رسول الله ﷺ ولې طايف ته ولاړ؟

۶۳ -ځواب: ترڅو خلک د خدای ﷻ عبادت ته دعوت کړي.

۶۴ -پوښتنه: د طايف خلکو د رسول الله ﷺ څخه څنګه استقبال وکړ؟

۶۴ -ځواب: هغوی نـه يوازې دا چې د رســول الله ﷺ دعوت يې قبول نه کړ، بلکې ماشـومان يې ورپسې واستول ترڅو رسول الله ﷺ په کاڼو وولي او رسول الله ﷺ يې زخمي کړ، حتی کلوشې يې له وينو ډکې وې.

۶۵ -پوښتنه: آيا د طايف څخه کوم څوک مسلمان شو؟

۶۵ -ځواب: د «عداس» په نامه يو مسيحي غلام و، چې د عتبه او شيبه باغوان هم و مسلمان شو.

۶۶ -پوښتنه: په کوم کال کې د معراج پېښه رامنځته شوه؟

۶۶ -ځواب: د نبوت په ۱۱ کال.

۶۷ -پوښــتنه: د رســول الله ﷺ د معراج له ســفر څخه په لنډه توګه يادونه وکړئ؟

۶۷ -ځواب: د رجب په ۲۷ د بعثت په يوولســم کال. جبرائيل (عليه الســلام) په نوراني څېره او پر براق (ځلېدونکې کربانه) باندې سواره وه او په نيمه شپه کې د رســول الله ﷺ کور ته راغله او هغه يې د خوب څخه ويښ کړ او د مسجد الحرام په لوري لاړل او هلته يې د رسول الله ﷺ مبارکه سينه يله کړه او زړه يې ورته په زمزم اوبو ومينځلو. هغوی په براق (ځلېدونکې کربــــانه) باندې سواره ول او له مسجد الحرام څخه مسجد الاقصی ته ولاړل او له هغه ځای څخه يې د آسمانونو په طرف سفر وکړ.

۶۸ -پوښـتنه: رسـول الله ﷺ کوم دلايل د خپل معراج د سفر د اثبات لپاره خلکو ته وړاندې کړل؟

۶۸ -ځواب: هغوی چې بيت المقدس يې ليدلی و د بيت المقدس د دروازو او پنجرو څخه يې ورنه پوښـتنه وکړه او رسـول الله ﷺ ورته په سـمه توګه

ځواب ورکړ او ويې فرمايل: «په لاره کې مې د يوې قبيلې (ټبر) کاروان وليد. چې يو خر پر اوښ د هغوی څخه مخکې په حرکت کې و او درې ورځې وروسته به مکې ته راورسېږي. يو اوښ د قريشو څخه ورک شوی و او رسول الله ﷺ ورته په دې توګه د هغه اوښ دقيق آدرس ورکړ.»

۶۹ -پوښتنه: په لومړي ځل چا د رسول الله ﷺ دغه سفر تائيد کړ؟

۶۹ -ځواب: حضرت ابوبکر صديق (رض)

۷۰ -پوښتنه: رسول الله ﷺ د معراج له سفر څخه کومه ډالۍ خپل امت ته راوړه؟

۷۰ -ځواب: پنځه وخته لمونځ، د سوره بقره آخري ايتونه او له شرک پرته د ګناهونو بښل.

۷۱ -پوښتنه: د «لومړۍ عقبه تړون» کوم تړون ته ويل کېږي؟

۷۱ -ځواب: رسول الله ﷺ به د حج په وخت کې خلکو ته دعوت ورکولو، په همدې وخت کې شپږ تنه چې د مدينې اوسېدونکي وو، رسول الله ﷺ سره د عقبه سيمې سره نږدی ملاقات وکړل او رسول الله ﷺ سره يې تړون وکړ چې خدای ﷻ سره به شرک نه کوي او ناوړه اعمال به نه ترسره کوي. چې همدا تړون د عقبه تړون په نامه يادېږي.

۷۲ -پوښتنه: د «عقبه دويم تړون» کوم تړون دی؟

۷۲ -ځواب: د بعثت په ۱۳ کال کې چې د حج مراسمو ته نږدې وخت و، ۷۵ تنه چې د مدينې مسلمانان وو له رسول الله ﷺ سره يې په پټه توګه د عقبه په سيمه کې ليدنه وکړه. رسول الله ﷺ د هغوی له منځه ۱۲ تنه وټاکل او

ورته يې وفرمايل: «چې کله خپل قومونو ته ورسېدلی نو هغوی به اسلام ته دعوت کړئ.»

۷۳ -پوښتنه: کله چې مشرکينو وليدل چې د مسلمانانو شمېر ورځ تر بلې په ډېرېدو دی، نو هغوی څه وکړل؟

۷۳ -ځواب: هغوی پرېکړه وکړه ترڅو د مسلمانانو رهبر (رسول الله ﷺ ) له منځه يوسي.

۷۴ -پوښتنه: په کوم ځای کې يې پرېکړه وکړه؟

۷۴ -ځواب: هغوی په (دار الندوه) کې سره مشوره وکړه.

۷۵ -پوښتنه: ابو جهل څه وړانديز ورکړ؟

۷۵ -ځواب: هغه ووېل: «له هر ټبر (قبيلې) څخه به يو تکړه ځوان وټاکو او د شپې له خوا به ورباندې حمله وکړي او هغه به له منځه يوسي.»

۷۶ -پوښتنه: رسول الله ﷺ څنګه له دې توطيې څخه خبر شو؟

۷۶ -ځواب: د جبرئيل (عليه السلام) د وحيې په ذريعه.

۷۷ -پوښتنه: رسول الله ﷺ د دغه توطيې سره د مقابلې په خاطر څه وکړل؟

۷۷ -ځواب: رسول الله ﷺ پرېکړه وکړه ترڅو مدينې ته هجرت وکړي.

۷۸ -پوښتنه: کله چې رسول الله ﷺ غوښتل د خپل کور څخه بهر شي نو ويې ليدل چې مشرکين د هغې د کور دروازې سره راټول شوي دي، نو څه يې وکړل؟

٧٨ -ځواب: د خاورې څخه یې یو موټی راواخیست او د مشرکینو په لوري یې وشیندلې او هغوی رسول الله ﷺ ونه لید.

٧٩ -پوښتنه: رسول الله ﷺ سره چا مهاجرت وکړ؟

٧٩ -ځواب: حضرت ابوبکر صدیق (رض)

٨٠ -پوښتنه: کله چې مشرکین د رسول الله ﷺ د وتلو څخه باخبره شول، نو څه یې وکړل؟

٨٠ -ځواب: د رسول الله ﷺ او ابوبکر صدیق (رض) په لټه کې شول او د مدینې په ټولو لارو کې یې څارونکي وګمارل او همدارنګه یې یوه ډله خلک د هغوی د پښو د نښو د پېژندلو لپاره وټاکل .

٨١ -پوښتنه: رسول الله ﷺ او ابوبکر صدیق (رض) په کومه نېټه د «قبا» ځای ته ورسېدل؟

٨١ -ځواب: د دوشنبې په ورځ، د ربیع الاول په ١٢مه.

٨٢ -پوښتنه: رسول الله ﷺ او ابوبکر صدیق (رض) په کومه نېټه مدینې ته ورسېدل؟

٨٢ -ځواب: د جمعې ورځ، وروسته د جمعې لمونځ څخه د مدینې په لوري روان شول.

٨٣ -پوښتنه: د مدینې خلکو د رسول الله ﷺ څخه څنګه استقبال وکړ؟

٨٣ -ځواب: هغوی خوښي څرګنده کړه او په نغمو یې د رسول الله ﷺ څخه استقبال وکړ.

٨۴ -پوښتنه: رسول الله ﷺ په څو غزاګانو کې برخه واخیسته؟

۸۴ -ځواب: ۲۷ غزاګانو کې.

۸۵ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ لومړۍ غزوه کومه یوه وه؟

۸۵ -ځواب: د بـــدر غزوه، چې خـــدای ﷻ د هغه ځخه د «الفرقان» په نامه یادونه کړې ده.

۸۶ -پوښتنه: د مشرکینو د مشرانو څخه کوم کس په دې غزوه کې مړ شو؟

۸۶ -ځواب: ابو جهل، د دوه انصار ځوانانو په وسیله.

۸۷ -پوښـتنه: د مسـلمانانو د شـهیدانو شـمېر او د کفارو د وژل شوو شمېر په دغه غزوه کې څو تنه ول؟

۸۷ -ځواب: ۱۴ مسلمانان شهیدان او ۷۰ کفار ووژل شول.

۸۸ -پوښـتنه: رسـول الله ﷺ د بدر د غزوې د نیول شـو کسانو په هکله څه امر وکړ؟

۸۸ -ځواب: هغه وفرمایل: «د هغوی سره ښــه ســلوک کوئ او هغه څه چې تاسو یې خورئ دوی ته هم ورکړئ.»

۸۹ -پوښتنه: بلاخره د رسول الله ﷺ پرېکړه د دغو نیول شوو کسانو په هکله څه وه؟

۸۹ -ځواب: هر څوک چې لس تنو مســلمانانو ته ســواد ور زده کړي آزاد به شي او د نورو څخه د هغوی د توان مطابق فدیه واخیســتل شي او آزاد دې شي.

۹۰ -پوښتنه: د احد غزوه په کوم کال کې رامنځته شوه؟

**۹۰** -ځواب: د هجرت په پنځم کال، شوال میاشت.

**۹۱** -پوښتنه: په دغه غزوه کې «عبدالله بن ابي منافق» څه وکړل؟

**۹۱** -ځواب: په یوې پلمې سره یې د مسلمانانو له لښکر څخه **۳۰۰** تنه جدا کړل او بېرته راوګرځېدل.

**۹۲** -پوښتنه: د احد د غزوه پایله څنګه شوه؟

**۹۲** -ځواب: لومړی مسلمانان د ډګر بریالي وو، اما هغه ډله چې رسول الله ﷺ هغوی ته دنده ورکړې وه ترڅو د غره ساتنه وکړي، هغوی له غره څخه راښکته شوي ول او دښمن د شا له طرفه په مسلمانانو برید وکړ او ډېری مسلمانان شهیدان شول.

**۹۳** -پوښتنه: پر رسول الله ﷺ په دغه غزوه کې څه تېر شول؟

**۹۳** -ځواب: رسول الله ﷺ پکې سخت ټپي شو، عقبه بن ابی وقاص د رسول الله ﷺ طرف ته یوه تیږه ور وار کړه چې د رسول الله ﷺ یو مبارک غاښ پرې شهید شو او مبارکه شونډه یې زخمي شوه. عبدالله بن قمیه پر رسول الله ﷺ حمله وکړه او د اوسپنې دوه حلقې د رسول الله ﷺ مبارک مخ کې لاړې.

**۹۴** -پوښتنه: د احد په غزوه کې مشرکینو کومه شایعه خپره کړه؟

**۹۴** -ځواب: د رسول الله ﷺ د شهادت.

**۹۵** -پوښتنه: د احد په غزوه کې څو تنه مسلمانان شهیدان شول؟

**۹۵** -ځواب: ۷۰ تنه.

۹٦ -پوښــتنه: کله چې رســول الله ﷺ خپل تره «حمزه» د ربړونې په حالت کې ولید، څه یې ورته وفرمایل؟

۹٦ -ځواب: که ســتا د خور «صــفیې» غم راسره نه وی ، ما په همدې حالت پرېښودلې ترڅو مرغۍ او وحشي حیواناتو خوړلی وی او په ورځ د قیامت به د هغوی له خېټو څخه را پیدا شوی وې.

۹۷ -پوښتنه: په کومه غزوه کې منافقینو د «افک» کیسه جوړه کړې وه؟

۹۷ -ځواب: د (بني مصطلق) په غزوه کې.

۹۸ -پوښــتنه: د رســول الله ﷺ ښــځه «عایشــه(رض)» څنگه له دې تهمت څخه پاکه ثابته شوه؟

۹۸ -ځواب: د قرآن مجید د آیتونو په نازل کېدو سره (سوره نور)

۹۹ -پوښــتنه: کله چې ابو ســفیان د احد په غزوه کې چیغې وهلې (ژوندی د وي هبل، ژوندی د وي هبل) رسول الله ﷺ حضرت عمر (رض) ته څـــه امر وکړ؟

۹۹ -ځواب: د هغـه پـه ځواب کې ووایـه (الله اعلی و اجل)، خدای لوی او پیاوړی دی.

۱۰۰ -پوښـتنه: په کومه غزوه کې «جویریه» ونیول شـوه او وروسـته بیا رسول الله ﷺ هغه واخیسته او آزاده یې کړه او بیا یې هغه سره واده وکړ؟

۱۰۰ -ځواب: د (بني مصطلق) په غزوه کې.

۱۰۱ -پوښتنه: کله چې د جویریه پلار په خپلې لور پسی راغی، نو رسول الله ﷺ څه وفرمایل؟

۱۰۱ -ځواب: رســول الله ﷺ جویریه ته اختیار ورکړ، که غواړې نو کولی شــې چې خپل د پلار سره لاړه شــې، خو جویریه وویل چې زه غواړم رسول الله ﷺ سره واوسم.

۱۰۲ -پوښتنه: د خندق غزوه څنگه رامنځته شوه؟

۱۰۲ -ځواب: کله چې رسول الله ﷺ د تړون څخه سر غړوونکي یهودان له مدینې څخه وایستل، هغوی د مشرکینو په وسیله په توطیو لاس پورې کړ، ډلې یې جوړې کړې او د مدینې په لوري یې حرکت وکړ .

۱۰۳ -پوښتنه: رسـول الله ﷺ ددې لپاره چې له هغوی سره مقابله وکړي په کومې حللارې یې فکر وکړ؟

۱۰۳ -ځواب: رســول اللـه ﷺ ډېر ژر خپل یاران له دې حملې څخه خبر کړل او حضرت سلیمان وړانـدیز وکړ څو د مـدینې څخه یو لوی خندق (کنده) وایستل شي او کفار د دغې خندق (کندې) تر شا معطل شي. رسول الله ﷺ دا مشوره ومنله او یو لوي خندق یې وایستلو .

۱۰۴ -پوښتنه: ددې غزوې پایله څنگه شوه؟

۱۰۴ -ځواب: د نعیم بن مسعود په مرسته د هغوی ترمنځ بېلتون رامنځته شو او د خـدای ﷻ په مرســته یو لوی طوفان راغی او د هغوی ټول وســایل له منځه ولاړل او هغوی سره بېل شول.

۱۰۵ -پوښتنه: په کومه غزوه کې مشرکینو پرېکړه وکړه چې د کور له بام څخه به، په رسول الله ﷺ لویه ډبره راغورځوي، څو رسول الله ﷺ شهید کړي؟

۱۰۵ -ځواب: د بنو نضیر په غزوه کې او رسول الله ﷺ د وحیې په ذریعه له دې توطیې (دسیسې) څخه خبر شو.

**۱۰۶ -پوښتنه: رسول الله ﷺ د بنو نضیر یهودانو سره څه معامله وکړه؟**

۱۰۶ -ځواب: وروسته له ماتې څخه، رسول الله ﷺ هغوی ته فرصت ورکړ څو خپلې ښځې او اولادونه دې ورسره واخلي او هر څېرته چې غواړي لاړ دې شي.

**۱۰۷ -پوښتنه: (صلح حدیبیه) څنګه منځته راغله؟**

۱۰۷ -ځواب: یوه شپه رسول الله ﷺ خوب ولید چې له خپلو یارانو سره مکې ته راغلی او د حج مراسم ترسره کوي، نو همدا وو چې رسول الله ﷺ پرېکړه وکړه چې همدا کال به د حج مراسمو ته ورځو. په لاره کې رسول الله ﷺ ته پیغام راغی چې قریشو پرېکړه کړې ده چې مکې ته د رسول الله ﷺ د راتګ مخنیوی وکړي، رسول الله ﷺ د حدیبې په سیمه کې ودرېدلو او یو استازی یې قریشو ته واستولو ترڅو هغوی ته ووایي چې موږ د حج کولو نیت لرو.

**۱۰۸ -پوښتنه: کوم کس د رسول الله ﷺ استازی وټاکل شو او په اخر کې څه وشول؟**

۱۰۸ -ځواب: حضرت عثمان (رض) د رسول الله ﷺ استازی وټاکل شو او کله چې قریشو ته ورغی نو هغوی د حضرت عثمان (رض) د بېرته راتګ مخنیوي وکړ. د مسلمانانو تر منځ داسې شایعات رامنځته شول چې حضرت عثمان (رض) په شهادت رسېدلی. رسول الله ﷺ د صحابه و څخه بیعت واخیستلو ترڅو د حضرت عثمان (رض) د وینې بدله له مشرکینو څخه واخلي. نو بلاخره د دواړو خواو تر منځ مصلحت وشو او د ۱۰ کالو لپاره سوله وشوه .

۱۰۹ -پوښــتنه: کوم کس وروســته د خیبر له فتحې څخه رســول الله ﷺ ته زهر ورکړل؟

۱۰۹ -ځواب: زینب بنت حارث، خو رسول الله ﷺ د وحیې په ذریعه خبر ترلاسه کړ.

۱۱۰ -پوښتنه: د بدر غزوې خپونې (علم برداران) څوک وو؟

۱۱۰ -ځواب: معصب بن عمیر، علی بن ابي طالب او سعد بن معاذ.

۱۱۱ -پوښتنه: د دومه الجندل غزوه څنګه پېښه شوه؟

۱۱۱ -ځواب: «دومه الجندل» دمشق سره نږدې یو ښار و. کله چې مسلمانان لــه دغې لارې څخه سوداګرۍ (تجــارت) ته تلل، نو مشرکینو به مسلمانان ځورول او د مســلمانـانو مـالونه به یې هم تالا او لوټ کول او کله به یې هم مسلمانان وژل. کله چې رسول الله ﷺ خبر شو چې هغوی نیت لري ترڅو په مدینې باندې حمله وکړي نو رســول الله ﷺ مخکې د هغوی د حرکت څخه د صــحابه و لښــکر سره په هغوی حمله وکړه او بریالیتوب د اســلامي لښکر په نصیب شو.

۱۱۲ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ اخري غزوه کومه وه؟

۱۱۲ -ځواب: د تبوک غزوه، د هجرت پـه نهم کال د رجب په میاشـــت کې پېښه شوه.

۱۱۳ -پوښتنه: کله چې رسول الله ﷺ مکه فتح کړه نو څه یې وکړل؟

۱۱۳ -ځواب: د عمومي عفو (ښښنې) اعلان یې وکړ.

۱۱۴ -پوښتنه: رسول الله ﷺ د مکې له فتح وروسته په څه ډول دې ښار ته راننوت؟

۱۱۴ -ځواب: ډېر په متواضع ډول سره، سر مبارک يې د خدای ﷻ په لوري ټيټ کړی و او د فتح سوره يې تلاوت کوله.

۱۱۵ -پوښتنه: مکه مکرمه په کومه نېټه فتح شوه؟

۱۱۵ -ځواب: د هجرت په اتم کال، د روژې په ۲۰ د جمعې ورځې په سهار.

۱۱٦ -پوښتنه: رسول الله ﷺ وروسته د مکې له فتح څخه لومړی کوم کار ترسره کړ؟

۱۱٦ -ځواب: له بتانو څخه د حرم شريف پاک کول او د مشرکينو له شعايرو څخه.

۱۱۷ -پوښتنه: رسول الله ﷺ د کعبې شريفې کيلي چا ته ورکړه؟

۱۱۷ -ځواب: عثمان بن طلحه ته.

۱۱۸ -پوښتنه: د مکې اوسېدونکي د رسول الله ﷺ په راتګ سره څه احساس درلود؟

۱۱۸ -ځواب: د مکې اوسېدونکي وېرېدل، ځکه چې هغوی فکر کولو هغه وخت چې دوی به رسول الله ﷺ ته ازار او کړاو ورکاوه نو رسول الله ﷺ به له دوی څخه غچ واخلي .

۱۱۹ -پوښتنه: رسول الله ﷺ د مکې اوسېدونکو سره څنګه رويه وکړه؟

۱۱۹ -ځواب: رســول الله ﷺ وفرمايل: (( نن ورځ هماغه خبره کوم چې يوســف خپلو ورونړو تــه کړې وه؛ نن ورځ هيڅ ملامــت نشــته او هيڅ ډول پوښتنه کول هم نشته،ځئ تاسو آزاد ياست ))

۱۲۰ -پوښــتنه: د رســول الله ﷺ کســب و کار له بعثت څخه مخکې بيان کړئ؟

۱۲۰ -ځواب: په ماشــومتوب کې د پســانو شــپون و او په ځوانۍ کــــې يې سوداګري (تجارت) کولو.

۱۲۱ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ ظاهري ښکلاوې بيان کړئ؟

۱۲۱ -ځواب: د مخ مبارک رنګ يې ســپين او ســور ته نږدې و، قد يې ميانه (برابر) او وېښته يې تور او سترګې يې زيږې وې، ښه بدن يې درلود او نوراني و.

۱۲۲ -پوښتنه: حضرت ابراهيم (عليه السلام) کومه دعا کړې وه؟

۱۲۲ -ځواب: ((ربنا وابعث فيهم رسولاً منهم))

۱۲۳ -پوښتنه: رسول الله ﷺ له کومې قبيلې (ټبر) څخه و؟

۱۲۳ -ځواب: د هاشمي له قبيلې (ټبر) څخه و.

۱۲۴ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ موحد نيکه (جد) څوک و؟

۱۲۴ -ځواب: حضرت ابراهيم (عليه السلام)

۱۲۵ -پوښــتنه: رســول الله ﷺ د عربو جاهليت په وخت کې په کوم تړون کې ګډون کړی و چې د اســلام په وخت کې يې وفرمايل: ((ما په دې تړون

کې ونډه واخیسته، که په اسلام کې هم یو داسې تړون ته دعوت شم، قبلوم یې.))

۱۲۵ -ځواب: د «حلف الفضول» تړون.

۱۲۶ -پوښتنه: د «حلف الفضول» تړون، څه ډول تړون و؟

۱۲۶ -ځواب: ددې تړون علت دا و چې: یو سړی خپل مالونه له یمن څخه مکې ته یوړل، په مکې کې یو بل سړي دا مالونه واخیستل خو ددې توکو پیسې یې ورنه کړې. د مال خاوند د مکې له اوسېدونکو څخه مرسته وغوښتله. د مکې له اوسېدونکو څخه هم یوه ډله د «ابن جدعان» په کور کې سره را ټول شول او یو تړون یې وتړلو ترڅو د مظلوم حق له ظالم څخه واخیستل شي.

۱۲۷ -پوښتنه: له هغه ځور او کړاونو څخه چې مشرکینو به رسول الله ﷺ ته ورکول، په لنډه توګه یادونه وکړئ؟

۱۲۷ -ځواب: یوه ورځ رسول الله ﷺ په جومات کې د سجدې په حالت کې و، چې «عقبه بن ابي معیط» د رسول الله ﷺ په شاه باندې د اوښ مرداره پرده واچوله. بیا بي بي فاطمې هغه د رسول الله ﷺ له شاه څخه لرې کړه.

۱۲۸ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ له ظاهري خصلتونو او څېرې څخه، یو څو ځانګړنې ذکر کړئ؟

۱۲۸ -ځواب: هغه له هر پلوه د نقص (کمی) څخه مبرا (پاک) و، په خلکو کې ښایسته سړی و، مبارک رنګ یې سپین او روښانه و، تندی یې پراخه او

وروځې یې نرۍ وې، بانه یې لوی، سترګې یې غټې او تورې وې، پوزه یې برابره وه، ږیره یې ډېره او وجود یې ښه و، قد یې متوسط خو لوړ ته نږدې و.

۱۲۹ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ د ښوونې او روزنې استاد څوک و؟

۱۲۹ -ځواب: رسول الله ﷺ په مستقیمه توګه د خدای ﷻ تعالی له لوري روزل شوی و. (فادبنی فأحسن تأدیبی)

۱۳۰ -پوښتنه: هغه آیت چې د رسول الله ﷺ د اخلاقو ستاینه کوي، ذکر کړئ؟

۱۳۰ -ځواب: ((وانک لعلی خلق عظیم))

۱۳۱ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ اخلاق په کور کې څنګه وو؟

۱۳۱ -ځواب: حضرت انس (رض) فرمایي: ((ما داسې څوک نه دي لیدلي چې د رسول الله ﷺ په شان د خپلې کورنۍ سره په ښو اخلاقو چلند وکړي.))

۱۳۲ -پوښتنه: رسول الله ﷺ په کوم کال کې د اختر لومړنی لمونځ ادا کړ؟

۱۳۲ -ځواب: د شوال په لومړۍ نېټه، دویم هجري کال.

۱۳۳ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ یو حدیث ذکر کړئ؟

۱۳۳ -ځواب: د هغه کس لپاره چې د خلکو ترمنځ د سولې هڅه کوي او د خیر خبره کوي، دروغجن نه ویل کیږي. (متفق علیه)

۱۳۴ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ لـه معجزاتو څخه یوه لویه معجزه ذکر کړئ؟

۱۳۴ -ځواب: د رسول الله ﷺ تر ټولو لویه او عظیمه معجزه د الله ﷻ کتاب «قرآنکریم» دی، چې تر اوسه هم شته او وروسته له څو پېړیو بیا هم پکې هېڅ بدلون نه دی راغلی.

۱۳۵ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ بله معجزه هم بیان کړئ؟

۱۳۵ -ځواب: کله چې مشرکینو غوښتل چې رسول الله ﷺ ورته خپل نبوت ثابت کړي، نو د رسول الله ﷺ څخه یې وغوښتل چې سپوږمۍ په منځ کې نیمه کړي او رسول الله ﷺ هم د خپلې ګوتې په اشارې سره سپوږمۍ په منځ نیمه کړه او بیرته خپل لومړي حالت ته راغله.

۱۳۶ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ ملګرو ته کوم نوم اخیستل کیږي؟

۱۳۶ -ځواب: صحابه

۱۳۷ -پوښتنه: رسول الله ﷺ د خپلو صحابو (ملګرو) په هکله څه فرمایلي دي؟

۱۳۷ -ځواب: زما صحابه، لکه د آسمان ستوري، چې هر یو پسې اقتدأ وکړئ نو هدایت به ومومئ.

۱۳۸ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ له نومونو څخه یو څو ذکر کړئ؟

۱۳۸ -ځواب: محمد، احمد، الماحي، الحاشر، العاقب، المقضي، ....

۱۳۹ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ د سیرت په هکله د ځینو کتابونو نومونه وواياست؟

۱۳۹ -ځواب: نبي رحمت، سیرة النبي، سیره ابن هشام، رحیق المختوم.

١۴٠ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ له تورې څخه د درېيو تورو نومونه وواياست؟

١۴٠ -ځواب: صمصامه توره، عضب توره او رسوب توره.

١۴١ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ ساتونکي څوک وو؟

١۴١ -ځواب: زبير بن عوام، حضرت بلال، سعد بن معاذ، ابو ايوب انصاري، سعد بن ابي وقاص، عباد بن بشير.

١۴٢ -پوښتنه: ولې رسول الله ﷺ ته «خاتم النبيين» وايي؟

١۴٢ -ځواب: ځکه چې وروسته له رسول الله ﷺ څخه به بل پيغمبر تر قيامته پورې رانشي او خپله رسول الله ﷺ هم فرمايلي دي: ((زه تر ټولو وروستی پيغمبر يم، وروسته له ما څخه بل پيغمبر نشته.))

١۴٣ -پوښتنه: کوم ښار په «مدينه النبي» باندې مشهوره دی؟

١۴٣ -ځواب: مدينه منوره.

١۴۴ -پوښتنه: رسول الله ﷺ د خپل ښار د فضيلت په هکله څه ويلي دي؟

١۴۴ -ځواب: رسول الله ﷺ فرمايلي دي: ((څوک چې په مدينه منوره کې مړ شي نو د قيامت په ورځ به زه د هغې شفاعت کوم.)) ابن ماجه.

١۴۵ -پوښتنه: رسول الله ﷺ څو نېزې درلودې؟

١۴۵ -ځواب: درې دانې: رمح، مثوي او مثني.

١۴٦ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ يوه بله معجزه هم بيان کړئ؟

۱۴۶ -ځواب: یو صحابه وفرمایل: «د خندق له جګړې وروسته، په کور کې مې لږ اوربشي درلودې او هغه مې اوړه کړل او یو پسه مې هم قرباني کړ. کله چې رسول الله ﷺ د خپلو ټولو یارانو سره له خندق جګړې څخه راستون شو، نو هغوی ټولو ښه ډوډۍ وخوړله او بیا هم دیګ ډک و.»

۱۴۷ -پوښتنه: مسجد النبي څه فضیلت لري؟

۱۴۷ -ځواب: رسول الله ﷺ فرمایلي دي: ((زما په جوماټ کې لمونځ کول په زر هاوو وارې غوره دی له نورو مساجدو څخه، مګر مسجد الحرام.))

۱۴۸ -پوښتنه: په مسجد النبي کې تر ټولو غوره ځای کوم یو دی؟

۱۴۸ -ځواب: ریاض الجنه (د رسول الله ﷺ له منبر څخه تر روضې مبارک پورې)

۱۴۹ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ یو حدیث ذکر کړئ؟

۱۴۹ -ځواب: رسول الله ﷺ فرمایلي دي: ((ستاسو څخه تر ټولو غوره هغه څوک دی چې خپلې کورنۍ سره ښه چلند وکړي، او زه ستاسو څخه تر ټولو غوره یم نسبت خپلې کورنۍ ته.))

۱۵۰ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ هغه حدیث ذکر کړئ چې په هغه کې یې د فارسي ژبې کلمات هم کارولي وي؟

۱۵۰ -ځواب: ابو هریره فرمایي: ((ګېډې مې درد کولو، رسول الله ﷺ په لاره تېرېدلو او ویې فرمایل: اشتیکیت درد، اشتیکیت درد. ای ابو هریره له درد څخه پازاب یې؟)) مسند احمد ۴۰۳/۲

۱۵۱ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ یو شعر ذکر کړئ؟

۱۵۱ -ځواب: د حنین په ورځ یې داسې وفرمایل:

((انا النبی لا کذب   انا ابن عبدالمطلب))

۱۵۲ -پوښتنه: وروسته له هغې چې رسول الله ﷺ د شعب ابي طالب څخه بهر شو، د ژوند سخته ورځ یې کومه یوه وه؟

۱۵۲ -ځواب: د تره او مېرمنې مړینه یې (ابوطالب او خدیجه)

۱۵۳ -پوښتنه: (عالم الحزن) کوم کال ته ویل کیږي؟

۱۵۳ -ځواب: د بعثت لسم کال ته، چې په دې کال کې د رسول الله ﷺ د ژوند دوه لوی ملاتړي وفات شول؛ ابوطالب او بي بي خدیجه (رض).

۱۵۴ -پوښتنه: د ابوطالب له مړینې څخه څو ورځې وروسته بي بي خدیجه (رض) وفات شوه؟

۱۵۴ -ځواب: درې ورځې وروسته یا درې میاشتې وروسته.

(ژباړن: د نظر اختلاف شتون لري)

۱۵۵ -پوښتنه: د احد له غزوې څخه وروسته کوم کس د رسول الله ﷺ د ترور نیت درلود؟

۱۵۵ -ځواب: «دعثور» په نامه کس و.

۱۵٦ -پوښتنه: په څه ډول یې د رسول الله ﷺ د ترور پلان درلود؟

۱۵٦ -ځواب: رسول الله ﷺ د یوې ونې لاندې غوښتل ویده شي، ناڅاپه یو له مشرکینو څخه په رسول الله ﷺ برید وکړ، کله چې یې د رسول الله ﷺ ویره ولیده نو توره یې له لاس څخه ولویده. رسول الله ﷺ ورته

وفرمایل: له تاسو سره څه معامله وکړم؟ هغه وویل: ته د خدای پیغمبر یې. رسول الله ﷺ هم هغه عفوه کړ.

۱۵۷ -پوښتنه: رسول الله ﷺ د نړۍ کومو باچاهانو ته بلنلیکونه واستول او هغوی یې اسلام ته دعوت کړل؟

۱۵۷ -ځواب: هرقل د روم باچا، مقوقین د مصر باچا، خسرو پرویز د ایران باچاه، نجاشي د حبشې باچاه او...

۱۵۸ -پوښتنه: د ایران باچا د رسول الله ﷺ د لیک په تړاو څه عکس العمل وښود؟

۱۵۸ -ځواب: د رسول الله ﷺ لیک یې څیرې کړ او ویې ویل: ولې د محمد نوم زما په لیک کې مخکې راغلی دی؟

۱۵۹ -پوښتنه: رسول الله ﷺ د هغه په حق کې څه دعا وکړه؟

۱۵۹ -ځواب: ویې فرمایل: (( خدای تعالی دې د هغه باچاهي دړې وړې کړي او هغه دې د خپل زوی په ذریعه نابود شي.))

۱۶۰ -پوښتنه: د هغه لیک متن څه و، چې رسول الله ﷺ د ایران باچا ته یې استولی و؟

۱۶۰ -ځواب: «بسم الله الرحمن الرحیم، له محمد رسول الله څخه د فارس لوی قصر ته، سلام په هغه چا چې د رښتینولۍ او هدایت پیرو دی او هغه څوک چې په خدای یې ایمان راوړی دی، د هغې په خدای او رسول شهادت ورکوم چې له هغه پرته بل خدای نشته، زه تاته دعوت درکوم په دې چې د خدای رسول یم، ترڅو ټولو هغه خلک چې ژوندي دي ویره او هیله

ورکړم، اسـلام ومنئ ترڅو په دواړو جهانونو کې روغ رمټ و اوسـئ، که سر غړونه وکړئ د مجوس گناه به پر تاسو وي.»

۱٦۱ -پوښتنه: د حضرت محمد ﷺ څخه مخکې کوم رسول تېر شوی و؟

۱٦۱ -ځواب: حضرت عیسی (علیه السلام) . تکراري نه دی

۱٦۲ -پوښـتنـه: هغه آیت چې خدای تعالی په هغه کې د رســول الله ﷺ اخلاق، نورو مسلمانانو ته د یوې نمونې په ډول معرفي کړي، ذکر کړئ؟

۱٦۲ -ځواب: ((لقد کان لکم فی رسـول الله اسوه حسنه لمن کان یرجوا الله والیوم الاخر))/الاحزاب:۲۱

۱٦۳ -پوښـتنه: لومړی آیت چې په رســول الله ﷺ نازل شــوی دی، ذکر کړئ؟

۱٦۳ -ځواب: ((اقرأ باسم ربک الذی خلق خلق الانسان من علق))

۱٦۴ -پوښـتنه: کله چې رسـول الله ﷺ د طایف په سفر کې خواشینی شو، څنگه دعا یې وکړه؟

۱٦۴ -ځواب: اې خـدایه! اې تر ټولو مهربانه خدایه، زه له خلکو څخه تاته د خپلې کمزورۍ، د تدبیر کمښت او ذلت څخه شکایت کوم. ته مې رب یې، نو ته ما هغه چا ته چې زما پرځولو ته مبارزه کوي یا هغه دښــمن ته ســپارې چې زما کار ورسره تړلی دی. خو که دا سـتاسـو له غوسې نه وي نو بیا راته د اندېښنې وړ نه ده .

۱٦۵ -پوښتنه: الله ﷻ د رسول الله ﷺ دعا څنگه قبوله کړه؟

۱٦۵ -ځواب: وروسته له دې دعا څخه، الله ﷻ د غرونو ملايکو ته امر وکړ، که رســـول الله ﷺ اجازه ورکړي نو طايف به د دوو غرنو ترمنځ، له منځه يوسي.

۱٦٦ -پوښتنه: رسول الله ﷺ څه وفرمايل؟

۱٦٦ -ځواب: خير، زه هيله لرم چې د دوی په راتلونکي نســل کې به داســې کسان را پيدا شي چې ، واحد خدای تعالی ته به عبادت کوي.

۱٦۷ -پوښـــتنه: کله چې رســـول الله ﷺ اراده وکړه چې مدينې ته هجرت وکړي نو مکې سره يې څه ډول مخه ښه وکړه؟

۱٦۷ -ځواب: اې کعبې! څه ښـه ښـار يې او څومره زما خوښـېږې، که زه مې خپـل قوم لـه دې ځـای څخـه نـه وای ايســتلی؛ هېڅکلـه به مې بل ځای د اوسېدو لپاره نه و غوره کړی.

۱٦۸ -پوښتنه: رسول الله ﷺ به کومه ورځ د سفر لپاره غوره کوله؟

۱٦۸ -ځواب: معمولاً د پنجشنبې ورځ.

۱٦۹ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ د آسماني کتاب نوم څه دی؟

۱٦۹ -ځواب: قرآن عظيم الشان.

۱۷۰ -پوښـتنه: قرآن کريم په څومره موده کې په رسول الله ﷺ باندې نازل شوی دی؟

۱۷۰ -ځواب: **۲۳** کلونو کې.

۱۷۱ -پوښـتنه: څه سـبب شـول چې خلکو به ورځ تر بلې د رسـول الله ﷺ دين ته مينه پيدا کوله؟

۱۷۱ -ځواب: ښه اخلاق، ښه رفتار او په ټوله کې له خلکو سره ښه چلند،...

۱۷۲ -پوښــتنه: د مکې یهودانو ولې د رســول الله ﷺ په راتګ سره قیام وکړ؟

۱۷۲ -ځواب: یهودان د هغه پیغمبر د ظهور په تمه وو چې د هغوی په آسماني کتاب کې یې یادونه شوې وه او دا چې رسول الله ﷺ د هغوی له قوم څخه نه و، نو ځکه یې مخالفت وکړ.

۱۷۳ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ خبرو ته کوم لفظ کارول کېږي؟

۱۷۳ -ځواب: حدیث شریف.

۱۷۴ -پوښتنه: سنت کوم څه ته ویل کېږي؟

۱۷۴ -ځواب: د رسول الله ﷺ ګفتار او کردار ته سنت ویل کېږي.

۱۷۵ -پوښتنه: زموږ دنده، نسبت رسول الله ﷺ ته څه ده؟

۱۷۵ -ځواب: دا چې د رســول الله ﷺ د ســنتو په ترسره کولو کې پابند او مخکښ واوسو، په خاصه توګه د لمونځ ادأ کول، ځکه چې رسول الله ﷺ به د لمونځ په ترسره کولو کې ډېر ټینګار کولو.

۱۷٦ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ له اخلاقو څخه یو څو ذکر کړئ؟

۱۷٦ -ځواب: له غریبانو سره یې مینه درلوده، له خلکو سره مهربانه و، هر کله چې به کومې غونډې ته ورتللو نو هغه ځای چې به خالي و هملته به کېناستلو او خپلو یارانو ته به یې اجازه نه ورکوله چې ورته پاځي، د خپل نفس لپاره به یې غچ نه اخیستلو، هیڅکله به هم د شخصي ـ مسایلو لپاره نه غوسه کېدلو مګر هغه وخت چې د خدای ﷻ حکم به نقض شو.

۱۷۷ -پوښتنه: رسول الله ﷺ د الوداع په خطبه کې څه وفرمایل؟

۱۷۷ -ځواب: ویې فرمایل: ((ای خلکو! ستاسو وینه او مال پر یو بل حرام دي او ما ټول هغه دود او دستور (رسم و رواج) چې د جاهلیت د زمانې و، له منځه یوړ.))

۱۷۸ -پوښتنه: رسول الله ﷺ به له کوم خطر څخه د خپل امت لپاره ویره درلوده؟

۱۷۸ -ځواب: شتمنۍ او نړۍ سره زیاته مینه. ځکه چې رسول الله ﷺ په دې هکله فرمایلي: (( ویره لرم چې مشرک نه شئ او د مخکنیو اقوامو په شان د نړۍ او شتمنۍ په موخه سره سیالي ونه کړئ.))

۱۷۹ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ یو حدیث ذکر کړئ؟

۱۷۹ -ځواب: رسول الله ﷺ فرمایلي دي: ((ای بلاله! اذان وکړه او موږ ته د هغې په وسیله ارامتیا را په برخه کړه))/ابو داود.

۱۸۰ -پوښتنه: د هغه کتابونو نومونه ذکر کړئ چې د رسول الله ﷺ احادیث او ویناوې پکې راټولې شوې وي؟

۱۸۰ -ځواب: صحیح البخاري شریف، صحیح المسلم شریف، سنن ترمذی، سنن نسایی، ابو داود، ابن ماجه.

۱۸۱ -پوښتنه: له هغه وېرې څخه چې رسول الله ﷺ له الله ﷻ څخه درلوده، یو واقعه ذکر کړئ؟

۱۸۱ -ځواب: عبدالله بن سخیر فرمایلي دي: ((یوه ورځ د رسول الله ﷺ خدمت ته ورغلم، رسول الله ﷺ په لمانځه و، کله چې یې لمونځ خلاص

کړ، نو د دعـا په وخت کې يې داســې ژړل چې تا به ويل چې اوبه د جوش کېدلو په حالت کې دي.))

١٨٢ -پوښتنه: د نړۍ په هکله د رسول الله ﷺ نظر څه و؟

١٨٢ -ځواب: رســول الله ﷺ فرمايلي دي: ((زه له دنيا سره څه کار لرم!؟، زما مثال په دې نړۍ کې داسې دی لکه يو مسافر چې د يوې ونې لاندې د لږ وخت لپاره ويده شي او بېرته راويښ شي او خپل سفر ته دوام ورکړي.))[٢]

١٨٣ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ د ساده ژوند څخه يو څو نمونې ذکر کړئ؟

١٨٣ -ځواب: يوه ورځ حضرت عمر بن خطاب(رض)، رسول الله ﷺ وليد چې په يوه پوزي باندې ويده دی، حضرت عمر (رض) تـه ژړا ورغله، رسول الله ﷺ ورڅخه پوښتنه وکړه چې ولــې ژاړې؟ حضرت عمر(رض) وويل: کسـري او قيصر په آرامـه او راحتۍ کې ژوند کوي او تاسو په داسې سختۍ کې ژوند تېروی. رسـول الله ﷺ ورته وفرمايل: «ايا ته په شــک کې يې، د هغوی سهم په دې نړۍ کې ورکړل شوی او په هغه نړۍ کې به هېڅ سهم ونه لري.»

١٨۴ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ له سخاوت څخه يادونه وکړئ؟

١٨۴ -ځواب: جابر بن عبدالله فرمايلي: ((د رســول الله ﷺ څخه چې هر څه وغښتل شي، «نه» نه وايي.))/ بخاري شريف

١٨۵ -پوښتنه: د يو څو لارو نمونه ذکر کړئ چې د رسول الله ﷺ احسانات پوره کړو؟

[٢] ابو داود

۱۸۵ -ځواب: د هغوی په سنتو عمل کول، د هغوی مبارک روح ته درود شریف ویل.

۱۸٦ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ کنیه څوک و؟

۱۸٦ -ځواب: ابوالقاسم.

۱۸۷ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ د څو تنو کاتبانو (کتاب لیکوونکو) نومونه واخلئ؟

۱۸۷ -ځواب: خلفای راشدین، خالد بن سعید، حضرت ارقم، زبیر بن عوام، معاویه، ابی بن کعب، زید بن ثابت.

۱۸۸ -پوښتنه: هغه ښځې چې د امهات المومنین په کور کې به یې خدمت کولو، نومونه یې ذکر کړئ؟

۱۸۸ -ځواب: ریحانه بن شمعون، میمونه بنت سعد، ام ضمیر، ام عیاش، خوله، خلیسه، خضره.

۱۸۹ -پوښتنه: رسول الله ﷺ کوم کسان په خپل ژوند کې د راز ویلو لپاره ټاکلي وو؟

۱۸۹ -ځواب: لور یې فاطمه، حضرت حذیفه، انس بن مالک.

۱۹۰ -پوښتنه: حضرت انس (رض) د رسول الله ﷺ د اخلاقو په هکله څه فرمایلي دي؟

۱۹۰ -ځواب: هغه فرمایلي: «هېڅکله مې له رسول الله ﷺ څخه بد-رد او غلطه خبره نده اورېدلې، د ۱۰ کالو خدمت په اوږدو کې یې ماته حتا د «اوف» کلمه هم نده ویلې.»

۱۹۱ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ یو حدیث ذکر کړئ؟

۱۹۱ -ځواب: «د کارګر مزد (حق الزحمه) تر هغه مخکې ورکړئ چې د هغه خولې وچې شوې نه وي»/ ابن ماجه.

۱۹۲ -پوښتنه: رسول الله ﷺ څه شی د خپلو سترګو د یخولو وسیله ګڼله؟

۱۹۲ -ځواب: لمونځ.

۱۹۳ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ ترونه کوم کسان و؟

۱۹۳ -ځواب: زبیر، عباس، ابوطالب، حمزه، حارث، ابولهب قثم، جحل، مقوم، ضرار، عبدالکعبه.

۱۹۴ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ ترورګانې څوک وې؟

۱۹۴ -ځواب: ام حکیم، عاتکه، اروی، بره، صفیه، امیمه.

۱۹۵ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ د دایي (د شیدو مېندو) نومونه وواياست؟

۱۹۵ -ځواب:

۱۹۶ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ د رضايي ورونو او خویندو نومونه وواياست؟

۱۹۶ -ځواب: عبدالله بن حارث، انیسه بن حارث، شیما بنت حارث.

۱۹۷ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ ترور (د مور خور) نوم وواياست؟

۱۹۷ -ځواب: عقیله بنت عمیم.

۱۹۸ -پوښتنه: رسول الله ﷺ څو ښځې درلودې؟

۱۹۸ -ځواب: یوولس ښځې.

۱۹۹ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ د ښځو نومونه ذکر کړئ؟

۱۹۹ -ځواب: خدیجه، سوده، عایشه، حفصه، زینب، ام سلمه، زینب بنت جحش، جویریه، ام حبیبه، صفیه، میمونه.

۲۰۰ -پوښتنه: هغه وخت چې رسول الله ﷺ له خدیجې (رض) سره واده کولو د دوی عمر څومره و؟

۲۰۰ -ځواب: رسول الله ﷺ ۲۵ کلن او بي بي خدیجه ۴۰ کلنه وه.

۲۰۱ -پوښتنه: د بي بي خدیجې (رض) مهر څومره و؟

۲۰۱ -ځواب: ۲۰ اوښان.

۲۰۲ -پوښتنه: رسول الله ﷺ په کومه نېټه له بي بي خدیجې (رض) سره واده وکړ؟

۲۰۲ -ځواب: له هجرت څخه مخکې.

۲۰۳ -پوښتنه: د هغه اولادونو نومونه یې ذکر کړئ چې بي بي خدیجې (رض) یې سکنۍ مور وه؟

۲۰۳ -ځواب: زینب، قاسم، رقیه، ام کلثوم، فاطمه، عبدالله.

۲۰۴ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ د اولادونو نومونه ذکر کړئ؟

۲۰۴ -ځواب: زامن: قاسم، عبدالله او ابراهیم / لوڼې: زینب، رقیه، ام کلثوم او فاطمه.

۲۰۵ -پوښتنه: په کوم کال کې یې لور «رقیه» وفات شوه؟

۲۰۵ -ځواب: د هجرت په دویم کال کې.

۲۰٦ -پوښتنه: بي بي فاطمه په کوم کال کې وفات شوه؟

۲۰٦ -ځواب: د هجرت په ۱۱ کال، شپږ میاشتې وروسته د خپل پلار له وفات څخه.

۲۰۷ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ زوی «ابراهیم» په کومه نېټه وفات شو؟

۲۰۷ -ځواب: د هجرت په ۸ کال کې وزېږېد او د هجرت په ۱۰ کال کې وفات شو.

۲۰۸ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ نسل له کوم یو اولاد څخه ډېر شو؟

۲۰۸ -ځواب: فاطمه زهرا.

۲۰۹ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ هغه لمسیان چې ډېره مینه یې ورسره درلوده، نومونه یې ذکر کړئ؟

۲۰۹ -ځواب: حسن، حسین، ام کلثوم او زینب چې د علي او فاطمې اولادونه وو.

۲۱۰ -پوښتنه: رسول الله ﷺ په کوم کال کې له (سوده) سره واده وکړو؟

۲۱۰ -ځواب: د هجرت په لسم کال.

۲۱۱ -پوښتنه: په دغه وخت کې رسول الله ﷺ او سوده څومره عمر درلود؟

۲۱۱ -ځواب: رسول الله ﷺ او سوده، دواړه ۵۰ کلن وو.

۲۱۲ -پوښتنه: سوده، څو کاله له رسول الله ﷺ سره ګډ ژوند وکړ؟

۲۱۲ -ځواب: ۱۴ کاله.

۲۱۳ -پوښــتنه: رسـول الله ﷺ په کوم کال کې له بي بي عایشـه(رض) سره واده وکړ؟

۲۱۳ -ځواب: د هجرت په لومړي کال، د شوال په میاشت کې.

۲۱۴ -پوښتنه: رسول الله ﷺ په کوم کال کې له (حفصه) سره واده وکړ؟

۲۱۴ -ځواب: د هجرت په درېیم کال، د شعبان میاشت.

۲۱۵ -پوښــتنه: هغه وخت چې رسـول الله ﷺ له حفصــې سره واده کولو، عمر یې څومره و؟

۲۱۵ -ځواب: ۵۵ کاله.

۲۱٦ -پوښـــتنه: رســـول الله ﷺ د خپلو ښـــځو ترمنځ له چا سره ډېره مینه درلوده؟

۲۱٦ -ځواب: له بي بي عایشې (رض) سره.

۲۱۷ -پوښتنه: ام المساکین، د رسول الله ﷺ د کومې ښځې لقب دی؟

۲۱۷ -ځواب: د بي بي زینب.

۲۱۸ -پوښتنه: رسول الله ﷺ په کومه نېټه له (بي بي زینب) سره واده وکړ؟

۲۱۸ -ځواب: د هجرت په درېیم کال، د رمضان په میاشت کې.

۲۱۹ -پوښتنه: رسول الله ﷺ په کومه نېټه له (ام سلمه) سره واده وکړ؟

۲۱۹ -ځواب: د هجرت په څلورم کال.

۲۲۰ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ څو ښځې د هغه په ژوندون وفات شوې؟

٢٢٠ -ځواب: حضرت خدیجه او زینب بنت جحش.

٢٢١ -پوښتنه: رسول الله ﷺ په کومه نېټه له زینب بنت جحش سره واده وکړ؟

٢٢١ -ځواب: د هجرت په پنځم کال.

٢٢٢ -پوښتنه: د زینب مهر څو درهمه و؟

٢٢٢ -ځواب: ٤٠٠ درهمه.

٢٢٣ -پوښتنه: رسول الله ﷺ په کومه نېټه له (جویریه) سره واده وکړ؟

٢٢٣ -ځواب: د هجرت په پنځم کال (جویریه د حارث یهودي لور وه، حارث یهودي د بني مصطلق قوم مشر و)

٢٢٤ -پوښتنه: رسول الله ﷺ په کوم کال کې له (حضرت صفیې) سره واده وکړ او مهر یې څومره و؟

٢٢٤ -ځواب: د هجرت په اووم کال کې وروسته له خیبر غزوې څخه یې ورسره واده وکړ او مهر یې آزادي وه ځکه چې په خیبر غزوه کې اسیره (بندۍ) وه.

٢٢٥ -پوښتنه: رسول الله ﷺ په کوم کال کې له (ام حبیبه) سره واده وکړ او مهر یې چا ورکړه؟

٢٢٥ -ځواب: د هجرت په اووم کال کې او مهر نجاشي ورکړ.

٢٢٦ -پوښتنه: رسول الله ﷺ په کوم کال کې له (حضرت میمونې) سره واده وکړ؟

۲۲۶ -ځواب: د هجرت په اووم کال کې.

۲۲۷ -پوښتنه: الله ﷻ، د رسول الله ﷺ ښځو ته کوم لقب ورکړی دی؟

۲۲۷ -ځواب: امهات المومنين.

۲۲۸ -پوښــتنه: د رســول الله ﷺ کومې ښــځې د هغه په ژوند کې وفات شوې؟

۲۲۸ -ځواب: حضرت خديجه او زينب بنت خزيمه.

۲۲۹ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ زومان (د لوڼو خاوندان) څوک وو؟

۲۲۹ -ځواب: ابوالعاص د زينب خــاوند، حضرت عثمان د ام کلثوم خاوند، حضرت علي د فاطمې خاوند.

۲۳۰ -پوښتنه: رسول الله ﷺ په کومه نېټه وفات شو؟

۲۳۰ -ځواب: د ربيع الاول په ۱۲، د هجرت ۱۱ کال.

۲۳۱ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ وروستۍ خبرې او غوښتنې څه وې؟

۲۳۱ -ځواب: د خپل امت لپاره دوه شــيان په ځای پرېږدم، تر هغه چې پرې عمل وکړي نو هېڅکله به هم گمراه نه شي: قرآن عظيم الشان او سنت.

۲۳۲ -پوښــتنه: رســول الله ﷺ د خپل ژوند په وروســتيو شــېبو کې د کوم لښکر د لېږد ټينگار کولو؟

۲۳۲ -ځواب: د اســامه بن زيد لښــکر، چې فلســطين ته لېږدول کېده. (دغه لښکر د رسول الله ﷺ په ژوند کې ونه استول شو، بلکې د حضرت ابوبکر صديق (رض) په خلافت کې واستول شو)

۲۳۳ -پوښتنه: چا د اسامه بن زید لښکر د ستونزو سره-سره بیا هم واستولو؟

۲۳۳ -ځواب: حضرت ابوبکر صدیق (رض).

۲۳۴ -پوښتنه: رسول الله ﷺ د ژوند په وروستیو شېبو کې د چا د حقوقو د ورکړې، ټینګار کولو؟

۲۳۴ -ځواب: د ښځو حقوق او د غلامانو د حقوقو رعایتول.

۲۳۵ -پوښتنه: رسول الله ﷺ په څه ډول دا نړۍ پرېښوده؟

۲۳۵ -ځواب: په داسې حال کې چې درهم او د دنیا کوم بل څه یې په لاس کې نه وو.

۲۳۶ -پوښتنه: کله چې د رسول الله ﷺ د وفات وخت رانږدې شو، څه یې وکړل؟

۲۳۶ -ځواب: د احد غزوې شهیدانو لېدلو ته ورغی، د هغوی لپاره یې لمونځ وکړ او هغوی سره یې خدای پاماني وکړه.

۲۳۷ -پوښتنه: آیا عزرائیل (علیه السلام) د رسول الله ﷺ د روح قبض کولو لپاره، د هغې څخه اجازه وغوښتله؟

۲۳۷ -ځواب: هو، او رسول الله ﷺ د خدای تعالی لېدنه غوره کړه.

۲۳۸ -پوښتنه: رسول الله ﷺ په کوم ځای کې دفن شوی؟

۲۳۸ -ځواب: د عایشه (رض) په کور کې، مدینه منوره.

۲۳۹ -پوښتنه: رسول الله ﷺ څو کاله ژوند وکړ؟

۲۳۹ -ځواب: ۶۳ کاله.

۲۴۰ -پوښتنه: کومو کسانو، رسول الله ﷺ ته غسل ورکړ؟

۲۴۰ -ځواب: حضرت علي، عباس بن عبدالمطلب او اسامه بن زيد.

۲۴۱ -پوښتنه: رسول الله ﷺ په څو ټوټو کفن کې تکفین شو؟

۲۴۱ -ځواب: درې ټوټې.

۲۴۲ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ د جنازې لمونځ څنگه ترسره شو؟

۲۴۲ -ځواب: د هغې جسد يې ایښودلی و او خلک به ډله ډله راتلل او په هغه به یې درود شریف ویلو.

۲۴۳ -پوښتنه: ابوسعید خدري، د رسول الله ﷺ د وفات په هکله څه فرمایلي دي؟

۲۴۳ -ځواب: «هغه ورځ چې رسول الله ﷺ مدینې منورې ته رادننه شو، نو هر څه روښانه شول او هغه ورځ چې رسول الله ﷺ وفات شو، نو هر څه تیاره شول.»

۲۴۴ -پوښتنه: د رسول الله ﷺ د وفات کېدلو خبر په صحابه و څه اغېز درلود؟

۲۴۴ -ځواب: هغوی چې رسول الله ﷺ سره يې ډېره مینه درلوده، د رسول الله ﷺ په مړینه یې ځینو باور ونه کړ او ټول ور باندې ډېر خواشیني شول.

۲۴۵ -پوښتنه: حضرت ابوبکر صدیق (رض) د رسول الله ﷺ له وفات څخه وروسته کوم آیت تلاوت کړ؟

۲۴۵ -ځواب: ((و ما محمد الا رسول قد خلت من قبله الرسل افأن مات او قتل انقلبتم علی اعقابکم))

۲۴۶ -پوښتنه: انصار تعريف کړئ؟

۲۴۶ -ځواب: انصار د مديني منورې اوسېدونکي وو، چې له رسول الله ﷺ او مهاجرينو سره يې مرستې کړې وې او رسول الله ﷺ به د انصارو مقام ته احترام درلود.

۲۴۷ -پوښتنه: خلفای راشيدن څوک دي؟

۲۴۷ -ځواب: حضرت ابوبکر الصديق، حضرت عمر فاروق، حضرت عثمان بن عفان او حضرت علی (رض).

۲۴۸ -پوښتنه: د عشرې مبشرې نومونه ذکر کړئ؟

۲۴۸ -ځواب: حضرت ابوبکر الصديق، حضرت عمر فاروق، حضرت عثمان، حضرت علی، طلحه ابن زبير، زبير ابن عوام، عبدالرحمن ابن عوف، سعد بن ابی وقاص، سعيد ابن زيد، او عبيد بن جراح (رض)

۲۴۹ -پوښتنه: د اصحاب صفه په هکله معلومات وړاندې کړئ؟

۲۴۹ -ځواب: دوی عبارت له هغه مهاجرينو څخه وو چې له مکې مکرمې څخه يې مستقيماً هجرت کړی و او وروسته د حبشې له هجرت څخه مدينې منورې ته راغلې وو، دوی د خپل ژوند ټول وسايل پرېښودلې وو او د مدينې منورې جومات ته به مخامخ په يوه کتار کې کيناستل او د رسول الله ﷺ خبرې به يې اورېدلی او عبادت به يې کولو.

۲۵۰ -پوښتنه: د بيعت الرضوان اصحابو په هکله معلومات وړاندې کړئ؟

۲۵۰ -ځواب: دوی هغه ۱۳۰۰ تنه صحابه وو چې د حديبيې په سوله کې يې له رسول الله ﷺ سره د «سمره» ونې لاندې بيعت کړی و.

## د لومړۍ برخې پای

# دويمه برخه

**۴۰ کاله مخکې له بعثت څخه، عام الفیل ۵۷۰ ز کال:**

۱- د رســول الله ﷺ د پلار (عبدالله بن عبدالمطلب) وفات کېدل په ۲۵ کلنۍ کې.

۲- د ابرهه حمله او تیری په کعبې شریفې باندې، ترڅو هغه ورانه کړي.

۳- د ربیع الاول په ۱۲ د دوشنبه ورځ، د رسول الله ﷺ زیږنده (ولادت).

**۳٦ کاله مخکې له بعثت څخه، ۵۷۴ ز کال:**

۱- هغه وخت چې رسول الله ﷺ څلور کلن وو، د بني سعید په سیمه کې د رسول الله ﷺ د سینې یله کېدل یا شق الصدر واقعه رامنځته شوه.

**۳۴ کاله مخکې له بعثت څخه، ۵۷٦ ز کال:**

۱- په شپږ کلنۍ کې له خپلې مور سره یې مدینې منورې ته سفر وکړ.

۲- مور یې د ابوأ (د مکې او مدینې ترمنځ) په سیمه کې وفات شوه او رسول الله ﷺ ٦ کلن وو.

۳- وروسته له مور د وفات څخه یې پالل د نیکه (عبدالمطلب) په غاړه شول.

**۳۲ کاله مخکې له بعثت څخه، ۵۷۸ ز کال:**

۱- نیکه یې (عبدالمطلب) وفات شو.

۲- وروسته د نیکه لــه وفات څخه یې پالل د تره (ابوطالب) په غاړه شول او رسول الله ﷺ ۸ کلن وو.

**۲۸ کاله مخکې له بعثت څخه، ۵۸۲ ز کال:**

۱- د ۱۲ کلنۍ په عمر کې یې له خپل تره سره شام ته سفر وکړ.

۲- بحیرا، چې یو مشهور راهب(عبادت کوونکی) و د رسول الله ﷺ لاس یې ونیولو او ویې ویل: «دا د خدای تعالی رسول دی او ډېر ژر به په پیغمبرۍ وټاکل شي.»

**۲۰ کاله مخکې له بعثت څخه، ۵۹۵ ز کال:**

۱- رسول الله ﷺ د ۲۰ کلنۍ په عمر کې له خپل تره سره د الفجار په جنګ کې ګډون وکړ.

۲- رسول الله ﷺ له خپلو ترنو سره د حلف الفضول په تړون کې وروسته له څلورو میاشتو څخه چې د فجار جګړه پای ته رسېدلې وه، ګډون وکړ.(هغه تړون چې قریشو تهعد وکړ چې مظلومانو سره به مرسته کوي)

**۱۵ کاله مخکې له بعثت څخه، ٦۰۰ ز کال:**

۱- د بي بي خدیجه (رض) له اموالو سره د سوداګرۍ (تجارت) لپاره شام ته یې سفر وکړ.

۲- د خدیجه الکبری سره یې واده وکړ، چې دغه وخت رسول الله ﷺ ۲۵ کلن او خدیجه (رض) ۴۰ کلنه وه.

**۵ کاله مخکې له بعثت څخه، ٦۰۵ ز کال:**

١- د کعبې شریفې بیا جوړونه، رســول الله ﷺ په دغه کال کې د حجر الاسـود تیږي په کېښودنه د یو لــوی ناورین او وینې تویونې څخه مخنوی وکړ.

**٢ کاله مخکې له بعثت څخه، ٦٠٢ ز کال:**

١- د پیغمبرۍ چمتووالې، د حرا په غار (سوري) کې عبادت کول.

٢- د ریښــتنو خوبونو لېدل، د تیږو ســلام ویل او د هغوی ســوګند ددې په پیغمبرۍ باندې.

## (د مکې دوران له ١-١٣ کال د بعثت)

**د بعثت لومړی، دویم او درېیم کال:**

١- د وحیې نــازل کېدل د حرا په غار (سوري) کې، په دغه وخت کې رسول الله ﷺ ۴٠ کلن وو، لـه بي بي خدیجه (رض) سره د ورقه بن نوفل کور ته ولاړ، هغه ورته وویل چې ته به پیغمبرۍ مبعوث شوی یې.

۲- ابوبکر صدیق، خــدیجه، علي او زید بن حارث د نبوت په لومړیو ورځو کې دعوت قبول کړ.

۳- پټ دعوت پیل شــوو، عثمان بن عفان، زبیر بن عوام، عبدالرحمن بن عوف او طلحه بن عبیدالله د ابوبکر صدیق (رض) په ذریعه مسلمانان شول.

**د بعثت څلورم کال:**

۱- وروسـته له هغه چې، (فاصـدع بما تؤمر) آیت نازل شـوو رسول الله ﷺ خپل دعوت راښکاره کړو.

**د بعثت پنځم کال:**

۱- د مسـلمانانو لومړی هجرت حبشـې ته، چې ۱۱ سـړي او ۴ ښـځې وي. د دوی ترمنځ عثمان بن عفان او رقیه د رسول الله ﷺ لور هم ګډون درلود.

۲- د حبشې په لوري دویـم هجرت، چې ۸۲ سړي او ۱۸ ښځې وي.

**د بعثت شپږم کال:**

۱- حمزه بن عبدالمطلب او عمر بن الخطاب (رض) مسلمانان شول.

۲- عمرو بن عاص، د قریشـو استازی نجاشي ته ورغلو ترڅو مسلمانان هغې ته وسپارې.

**د بعثت اووم کال:**

۱- د اقتصادي کلا بندۍ تړون رامنځته شو.

**د بعثت اتم او نهم کال:**

۱- د اقتصـادي کلا بندۍ دريې کالـــه دوام وکړ، او د بعثت په لسـم کال کې لمنځه ولاړه.

**د بعثت لسم کال (عام الحزن)**

۱- د اقتصادي کلا بندۍ له منځه تلل.

۲- د ابوطالب او بي بي خديجه (رض) وفات کېدل.

۳- د رسول الله ﷺ واده کول له سوده بنت زمعه سره.

۴- رسول الله ﷺ د دعوت لپاره طايف ته ولاړ.

۵- د معراج پيښه او د لمونځ فرض کېدل په دغه سفر کې.

**د بعثت يوولسم کال:**

۱- رسول الله ﷺ د حج د ترسره کولو په وخت کې د خزرج له قوم څخه ٦ تنه اسلام ته دعوت کوي او هغوی ٦ تنه هم اسلام قبلوي.

**د بعثت دولسم کال:**

۱- د لومړۍ عقبې تړون او د خزرج له قوم څخه د ۱۲ تنو مسلمان کېدل.

۲- رسول الله ﷺ ، مصعب بن عمیر د دعوت لپاره مدینې ته استوي.

**د بعثت ۱۳ کال:**

۱- سعد بن معاذ او اسید بن حضیر د مصعب بن عمیر په ذریعه اسلام قبلوي.

۲- د عقبې دویم تړون، د اوس او خزرج له قوم څخه ۷۲ تنه (ښځې او سړي) اسلام قبلوي.

۳- د مسلمانان د هجرت پیل له مکې څخه مدینې ته.

۴- قریش په «دار الندوه» سیمه کې د رسول الله ﷺ د وژل کېدو پریکړه کوي.

## (د مدینې دوران له ۱-۱۱ کال د هجرت)

**د هجرت لومړی کال:**

۱- د رسول الله ﷺ او ابوبکر صدیق (رض) هجرت له مکې څخه مدینې ته، د سفر ۲۷ ورځ او د هغوی پټ کېدل د ثور په غار (سوري) کې.

۲- د دوشنبه ورځ د ربیع الاول ۱۲، رسول الله ﷺ او ابوبکر صدیق (رض) قبا ته رسیږي او هلته څلور ورځې پاتې کیږي او د قبا جومات، په اسلام کې د لومړي جومات کار پیل کیږي.

۳- د مسجد النبي د جوړولو کار پیل کیږي او د انصارو او مهاجرینو ترمنځ د ورووليی تړون رامنځته کیږي.

۴- د مدینې اوسیدونکي د رسول الله ﷺ له راتګ څخه خوشحاله کیږي او هغه ته ښه راغلاست وايي.

۵- د اسلامي حکومت جوړونه پیل کیږي.

٦- رسول الله ﷺ له بي بي عایشه (رض) سره واده کوي.

۷- د قریشو سره د جګړې اجازه ورکول کیږي (سوره حج، ۳۹ آیت)

**د هجرت دویم کال:**

۱- پر مسلمانانو باندې جهاد فرض کیږي، د رجب په ۱۵ مه د مسلمانانو قبله له مسجد الاقصی څخه مسجد الحرام ته بدلیږي.

۲- د روژې، زکات او اختر لمونځ فرض کیدل.

۳- د بــــدر غزا رامنځته کېدل، د روژې ۱۷ مـــه د جمعه ورځ، د مسـلمانانو بریالي کېدل، د مسلمانانو شمېر ۳۱۳ تنه او د مشــــرکینو شمېر ۱۰۰۰ تنه وو، په مشــــرکینو کې ۷۰ تنه ووژل شول د ابوجهل او امیه بن حلف په ګډون، د مسلمانانو څخه ۴ تنه صحابه شهیدان شول.

۴- د عبدالله بن زبیر بن عوام زېږنده، چې په مدینه کې لومړی مهاجر ماشوم وو.

۵- د بني قینقاع جګړې رامنځته کېدل.

٦- د حضرت علی (رض) واده له بي بي فاطمه سره.

۷- د رسول الله ﷺ لور او د حضرت عثمان (رض) د ښځې «رقیه» وفــات کېدل.

**د هجرت درېیم کال:**

۱- د رسول الله ﷺ واده له حفصه سره، حفصه د عمر (رض) لور وه او عمر یې ۱۹ کاله وو.

۲- د احد جګړه او د عبدالله بن ابي سلول او د هغه پیروانو راستنېدل له نمیې لارې څخه، د ۷۰ تنو صحابه شهید کېدل په شمول دې: حمزه، عمرو بن جموح، انس بن نضر او وسعد بن ربیع (رض).

۳- د امام حسین (رض) ولادت.

۴- د حمرأ الاسد غزوه.

۵- د حضرت عثمان بن عفان (رض) واده لـــه ام کلثوم سره چې د رسول الله ﷺ لور وه.

٦- د «رجیع» پېښې رامنځته کېدل چې ۱۰ تنه صحابه پکې شهیدان شول.

**د هجرت څلورم کال:**

۱- «سریه بّر معونه» چې ۷۰ تنه صحابه پکې شهیدان شول.

۲- د بني نضیر غزوې رامنځته کېدل.

۳- د رسـول الله ﷺ واده له زینب بنت خزیمه سره، چې زینب وروسـته له درې میاشتو څخه وفات شوه.

۴- رسول الله ﷺ له ام سلمه سره په **۲۹** کلنۍ کې واده کوي.

۵- د شرابو حرام کېدل.

٦- د رسول الله ﷺ واده له زینب بنت جحش سره چې **۳٦** کلنه وه.

۷- د حجاب فرض کېدل.

**د هجرت پنځم کال:**

۱- د خندق غزوې رامنځته کېدل او د هغوی ماته.

۲- د بني قریظه غزوه چې کلا بندۍ یې ۲۵ ورځې دوام وکړ.

۳- د سعد بن معاذ وفات کېدل له دې امله چې په خندق غزوه کې سخت ټپي شوی وو.

۴- د افک پیښه چې وروسته له بني مصطلق له غزوې څخه راپیښه شوه، د نور سورت آیتونه نازل شول ترڅو د عایشه (رض) پاکې ثابت شي.

(د شعبان میاشت)

۵- د رسول الله ﷺ واده لـــه جویره بنت حارث سره، چې جویره ۲۰ کلنه وو.

٦- د مسلمانانو او مشرکینو د واده بند کېدل او د تیمم تشریح کېدل.

**د هجرت شپږم کال:**

۱- د حج فرض کېدل.

۲- صلح حديبيه، بيعت الرضوان او د سوره فتح نازل کېدل.

۳- رسـول الله ﷺ وروسـته له صـلح حديبې څخه ټولو پاچاهانو ته ليک استوي او هغوی اسلام ته دعوت کوي.

۴- عمره القضأ.

**د هجرت اووم کال:**

۱- د خيبر د فتح غزوه، رسـول الله ﷺ له خپلو ۱۴۰۰ تنو صـحابه سره چې ۲۰۰ اسـپونه يې هم درلودل، د جنګ ميدان ته را دننه شـو. په دې غزوه کې ۹۳ يهودان ووژل شول او ١٦ مسلمانان شهيدان شول.

۲- د جعفر بن ابي طالب راستنېدل سره له خپل يارانو سره له حبشې څخه او د ابو هريره (رض) مسلمان کېدل.

۳- د رسـول الله ﷺ واده کول له رمله بنت ابي سفيان، وصيفه بنت حيی او ميمونه بنت حارث سره.

۴- د الاغ (خر) غوښې حرام کېدل.

**د هجرت اتم کال:**

۱- د خالد بن وليد مسلمان کېدل.

۲- د مؤته غزوه، چې د مسـلمانان او رومیانو تر منځ رامنځ ته شوه، مسلمانان ۳۰۰۰ تنه او رومیان ۱۰۰۰ تنه وو. زید بن حارث، جعفر بن ابي طالب او عبدالله بن رواحـــه شهیدان کېږي او دا لومړۍ غزوه وه چې د جزیره العرب څخه بهر وه.

۳- د مکې د فتح غزوه چې د ۱۰۰۰۰ تنو مسلمانانو سرتیرو په ذریعه د روژې په ۱۷ مه.

۴- د ابوسفیان مسلمان کېدل.

۵- د حنین غزوه.

٦- د رســول الله ﷺ د لور «زینب» وفات کېدل، د ابراهیم پیدایښــت، د رسول الله ﷺ اولاد له ماریه قبطیه څخه.

**د هجرت نهم کال:**

۱- د تبوک غزوې رامنځته کېدل، چــې ۳۰۰۰۰ مسلمانانو پکې ګډون کړی وو، د کعب بن مالک، مراره بن ربیع او هلال بن امیه مشـهوره کیسـه په دې غزوه کې رامنځته کېږي.

۲- د توبه سورت نازل کېدل.

۳- رسول الله ﷺ ، ابوبکر صدیق (رض) ددې کال د حج امیر ټاکې.

**د هجرت لسم کال:**

۱- د مسلیمه بن کذاب را څرګندیدل، چې د نبوت مدعی وو او شراب او زنا ته یې حلال ویل. د عنسی راڅرګندیدل چې د نبوت مدعی وو.

۲- حجه الوداع، رسول الله ﷺ د ۱۲۰۰۰۰ مسلمانانو تر منځ خطبه وویله.

۳- رسول الله ﷺ د اسامه لښکر د رومیانو په لورې آماده او تجهیز کوي.

۴- د ام کلثوم او ابراهیم وفات کېدل، چې ابراهیم ۱۸ میاشتې وو.

۵- عبدالله بن ابي سلول، د منافقانو مشر په مدینه کې مړ کیږي.

**د هجرت یوولسم کال:**

۱- د عنسـی مړینه په یمن کې، چې د پیغمبرۍ دعوا یې کړي وه او د سجاح په نامه کس راڅرګندیدل چې د نبوت مدعي وو.

۲- د دوشـنبه په ورځ، د ربیع الاول ۱۲ وروسـته له ۱۴ ورځو مریضۍ څخه د ۶۳ کالو په عمر، روسول الله ﷺ د بي بي عایشې (رض) په کور کې وفات شوو.

۳- د مسلمانانو بیعت له ابوبکر صدیق (رض) سره د خلافت لپاره.

**پــای**

## د ژباړن چاپ شوي آثار:

۱. مدیریت او رهبري (مقایسوي څېړنه)

۲. د حضرت محمد ﷺ د ژوند اړوند ۲۵۰ پوښتنې او ځوابونه

۳. غوره کیسې او ویناوې

۴. د افغانستان د اساسي قانون اړوند پوښتنې او ځوابونه

(حقوقي، سیاسي او اداري ستاژ ازموینو لپاره)

۵. د بریا رازونه

۶. روحي آرامتیا او بریالیتوب

## د ژباړن راتلونکي آثار:

۱. د نړیوال تجارت سازمان

۲. د پوهانو لنډې کیسې

۳. د ژوند لارښوونې

۴. بریالیتوب او مثبت اند

۵. لیکوالي او ژباړه (د مقالو ټولګه)